موز ول دا به اوس مدار د مشتري وي
په مريخ پسي زحل راغی جلوو ته
موږ له روو بيريدو افسوس دی
بدنصيب ورکړو په لاس آدم خورو ته
د نغري له ښندو ولويدو نغري ته
له بارانه مو پناه يووړه ناوو ته
له غالبوزو تښتيدو ، پر اژدر پيښ سوو
د طوفان له بيري ولاړو گردابو ته
که پخوا وژلو روس او روسپالانو
اوس مو ناست دي مجاهد ورونه مرگو ته
د اولس د خلکو خون دی د چوغکي
د سړيو وژل لوبي دي هغو ته
دوی له پاره د چورونو ، چپاوونو
اچولي ټوپکونه دي اوږو ته
د آبونو ، د سرونو ، د مالونو
د ساتني اميد نه سي دي ځلمو ته
بلکه دوی پخپله لاري دي نيولي
بلکه دوی لېڅي راغښتی دي داړو ته

د هفتو نَهَر ليوان دي ، نور څه نه دي
دا د دين ټيکه داران پردو مالو ته
رهبران شيندي سکروټي پر باروتو
اخوندان پاشي پټرول د اور لمبو ته
دا ناأهله ماڼوګان سوچ ليوني دي
کښتۍ بيايي جهاز ټپو ګردابو ته
د قدرت هوس له سده دي ايستلي
زهر اچوي د شاتو وپيالو ته
دا ناولي بند په پيټ په پيغور نه دي
دا ښيَلي ګوري نه ، دين وپښتو ته
بدرګي د قافلو پاخه ټګان دي
کاروانونه دي سپارلي خوني غلو ته
پروا نه لري که قام که ملك تپيزي
خو ور لويږي دي روپۍ د دوی جيبو ته
زموږ خزان نه لري پای فتني لا زيږي
انتظار عبث هوس دی بهارو ته
زموږ اوريځی اوروي ټکي پر کليو
زموږ بريښناوي مو اور اچوي ښارو ته

هره شپه توره تروږمۍ ده زموږ په ملك کي
هره ورځ تندري لاس اچوي وړانگو ته
دا مو حال دی د وطن بدبخت کپوره !
څنگه ولاړ سو په دي بده ورځ کورو ته
زما قسم په هغه لوی او واکمن خدای دی
چي زمري يې احتياج کړي دي بيزو ته
تر گريوان به دي په ورځ د محشر نيسم
چـــي مو تله ودريږي عملو ته
پورته پاڼ دی کښته پړانگ ، عجب ژوندون سو
خدايه ! مخ ته زمهرير ، شا دوږخو ته
اور دي واخلي زنده گي چي د سپکتيا وي
مرگ پرده ده وبي آبو ژوندونو ته
زهر ښه دي ، نه عسل د کښتو سترگو
زندۍ ښه ده ، نه کږه غاړه غوښتو ته
پرهر ښه دی بې علاجه ، بې پټيه
نه اړي د منتونو ملهمو ته
تخته ښه ده ، نه چي تخت د پت په تللو
سر غوڅ ښه دی ، نه چي ځوړ په عار تاجو ته

ږوري ښه ده ، نه مانۍ د بې ارزښو
سولۍ ښه ده نه سر ټيټ په احتياج سپو ته
ما خو خوښه د مرګ خوا کړه خلکو واورئ
د ستي په شان ورډانګم سرو لمبو ته (۳)
د ملګرو ملتو له ظلمه دايم
د ققنس په دود اور اچوم کالو ته
دا پيغام د لولپې خور افغانانو !
رسوئ د انسانانو وغوږو ته :
« د بشر د حق دعوې دي خوشي پوچې
شعبدې دي د سپيډلو تير ايستو ته »
***　***　***

## د لولپه پيغلې جنازه :

د تکبير او د تهليل په ازانګو کې
سيل د اوښکو جنازه وړه ښخيدو ته
د آهونو شرارې وې ، د سوز چيغې
د نامرادي لولپه پيغلې ځنګو ته
دا شعار به په لوړ ږغ وايه نيازمنو :
« موږ سپارو د پټو مړي پرښتو ته

موږ ایزدو د پټ ګوهر پخپل صدف کې
موږ پرېښودو ننګ جوهر د خدای رحمو ته
موږ په خاورو کې ساتو هغه اتله
چې د وياړ قصې به پاته وي نسلو ته
چې همت به يې کعبه وي د پټ پالو
چې غيرت به يې قبله وي ننګيالو ته
چې کردار به يې وي شهکار د قربانيو
چې ايثار به يې عنوان وي کارنامو ته
چې مغزي به يې جګيږي په ميړانه
چې سرونه به يې کږيږي سرښندو ته
چې په سوز به يې بلبلان وايي ستايني
چې په وياړ به يې پټنهان راځي تلينو ته
چې به يې ناز په اتلواله هر افغان کړي
د وطن تاريخ به يې فخر په بيان کړي » (٤)
۱۳۷۳ ش

## لمن ليکونه :

۱ - ګوپال ، ګوپالا ، ګوپال داس په هندوانو کي د نارينه نوم دی .

۲ - آکاش په هندي ژبه آسمان ته وايي ، د ډهلي راډيو چي آکاش واني بولي د آسماني ږغ معنا لري .

۳ - په هندوستان کي پخوا دود و ، چي هندوانۍ کونډي به له ګران ميړه سره ځان سوځاوه ، دغه ښځه ستۍ بلله کيدله.د ستي کلمه د سوي سوځلي او لولپه په معنا په پښتو ادب کي راغلي ده ، ستۍ هم تلميحاً په پښتو ادب کي سته ، عبدالقادر خان ختک ويلي دي :

د مهجور تر زندګيه مرګ بهتر دی
که ستۍ ستيه کيږي نه ده ګرمه

٤ - اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلَهَا وارْحَمْهَا وَتَجَاوَزْ عَنْهَا .

بسم الله الرحمن الرحيم

## مهاجره پیغله وايي :

موري څه وکړم ، ناکام دی بیا ورځمه

د ملګرو ملتونو اداري ته

نه ورځ ګوري ، نه شپه ګوري دا څو میاشتي

سپك پاسك ، لڅر ګوپال راځي کېږي ته (١)

هم خروښیزي ، هم خښمیزي ، هم غړومبیزي

هر ګړی راته ولاړ وي دروازې ته

کله وايي : اوس کالي درغورځومه

ګاهی وايي : اوس مو بیا یمه تانې ته

سپکي سپورې خوبې ته اروې په کور کې
زه له شرمه څخه وتای نه سم کوڅې ته

له غیرته سي خولې را باندي ماتې
چې هر وار گورم د جَت گوپال جَولې ته

پردیسي ده ، بیکسي ده ، بیوسي ده
ناداریو گړگ را راچاوه اینې ته

پردی ملك دی ، سخته ورځ ده تنگدستي ده
پور نایابه ، مخ مو نه گرزي پیسې ته

بې دوا راته پرته یې دا څو میاشتی
هَك هَریان یو د اد کوپرهیز دانې ته

خدای پوهیږي چي خوږ ژوند راپوري تریخ دی
کشکې ژر مو لوږه بوزي هدیرې ته

د پورو له منتونو څخه به خلاص سو
اړ به نه یو د بیدینو نذرانې ته

وایي : مرگ یوځای نخری بل ځای پردې کړي
رسیدلې ده خبر د مرگ پردې ته

چاره هډ ته رسیدلې ده باور کړه
زړه مي چوي ، ساه راغلې ده وخولې ته

یا راوړم مدد معاش یا به ځان وژنم

په تش لاس به په ژوند رانه سم ادې ته

پخپل سر سره به سر د افغان جگ کړم

په جگ سر راځه مورکي هدیرې ته

*** *** ***

## مور یې ورته وایي :

لوري ځه ، که به زما په دعا کیږي

ایلوونکې د یاغي باغي مراد وسې

لوري ځه ، ستاره دي وه د شنو زمریو

لوري ځه د شیرعلي په سپرکي اوسې

لوري ځه ، غیبي سپاره درسره مله وه .

لوري ځه ، د لاس لکړه د ړندو سې

لوري ځه ، خنجر د زړو سې د بد خواهو

ځه ، نشتر د بدبینانو د لیمو سې

ځه زلۍ پر پاخه کنبت سي د بیرحمو

ورځه ، تکه د ظالم د درمندو سې

ځه تروزمۍ سې د کنجوسو د سپوږمیو

ورځه تندره د بخیلو د لمرو سې

لوري ځه ، الله دي ستا وي نګاوانه

سوبه ستا وه ، برى مومې ، برخه يوسې

***    ***    ***

# مهاجره پيغله

## د ملګرو ملتو په دفتر کې :

لسم وار دى چي راځم دې غمکدې ته

تا بند کړى دا شپږ مياشتي زموږ معاش دى

د څو مياشتو کراهه يې ده را باندي

دِ غم کور د ګوپالا غوندي اوباش دى

هره ورځ راته ولاړ ، پوچ و رد وايي

رښکي رښکي مو هَى هَى د آب قُماش دى

پوره وړو يو ، له خَيلمي په تنګ کړي

هره ورځ مو ترمنځ شخړه ده ، پرخاش دى

څه تَوَري چي مو وو ، هغه مو خرڅ کړل

نالي محُکه سوه ، بړستنه مو آکاش دى (۲)

له اړيو د وقار بندونه مات دي

له سختيو د تمکين کور تاش په تاش دى

که نغري مو ساړه کړي ناداري دي
په آهو سره مو تود د لوږي داش دی

په شپو شپو شامه نهر ، له ناتوانیه
د اجل لاره څارو ، د مرگ تلاش دی

چپَه باد ده زموږ کښتۍ پسي اخیستې
د ملګرو ملتو د خولې باش باش دی

زه چي هره پلا راځم پر لیمو پښې زدم
ستا جواب هغه کاسه ده هغه آش دی

انصاف تللی ، غوَر نستته ، زړسوی ورك سو
تبلیغات په خوررو ، داد په خشخاش دی

هی افسوس د افغانانو خواره ژونده !
چي دي سپکي ته د هر گادړ تالاش دی

***   ***   ***

## د ملګرو ملتو مامور وايي :

ولي نه ځي مهاجر خپلو ملکو ته ؟
ولي ناست دي لا د نورو خیراتو ته

اوس خو روس له ملکه ووت ، روسپال مات سول
دروازې د ملك دي خلاصي د دوی تلو ته

پروطن د مجاهدو پاچهي ده

چي دوی غوښته ، قدرت ورغی هغو ته
اوس یې ولي ډمارلي دي لا سترګي

د ملګرو ملتونو څو پیسو ته
نه شرمیږي دا د خواست ګولو ته ناست دي

سترګي کښته اچولي ، ګوري پښو ته
رانجه کاندي د هغو د پلو ګرزونه

چي یې سي توزني هیلي کرمو ته
ماجِت ګرم ، بنډار خوږ ، روزي بې زیاره

پرڅه ولاړ سي ګدایان خپلو کورو ته ؟
ته به وایې پر اینه یې تریخی نسته

لاس د فقر یې نیولی دی پردو ته
ویر دی دا چي همت ننوت په مځکه

واویلا چي غیرت وتښ اسمانو ته
هی افسوس چي شرم ولاړ له افغانانو

آخ ارمان چي حیا شا کړه پښتنو ته
دا ګوله د بې ننګۍ چي افغانان خوري

وبې نه خوري که یې واچوې وسپو ته

ړانده کړي يې ليمه بې غيرتۍ دي
کاڼه کړي يې غوږونه دي پيغرو ته
تُوپر دا رنگه روزي لعنت پر هغو
چي پرانستي يې دي خولې د خواست گولو ته
*** *** ***

## مهاجره پيغله :

مهاجره سره وشنه کيده له خښمه
په مثال د زخمي مار به تاويدله
هر پيغور سنخه چاړه وه په اينه کي
هر پيټ سانگه په سينه ورچخيدله
هراَنك د هلايلو زهرو غوړپ و
چي معده به يې له تاوه شوړيدله
هر رشخند يې د دوزخ د اور لمبه وه
په ککره کي ماغزه په ايشيدله
مهاجري ويل : چَپ ، کپوره بس کړه
نشتر مه وروړه له شنوخته ډکو زړو ته
ولي موږ وراچوې د فتنو سين ته ؟
ولي موږ پوري وهې خوني سيلو ته

ولی موږ ارتاووې د تورو څرخ ته ؟
ولي موږ ورتيل وهې سرو تنورو ته ؟
ولي نه گوري د ملك جاري ناورين ته ؟
ولي موږ گوزاروې غوړو لمبو ته ؟
بده دا ده چې دا زموږ سوځندو اوښکو
لاره نه موندله ستاسي سختو زړو ته
نه ثمر پيدا كه زموږ د صبر ونې
نه اثر ورکړ دردونو زموږ آهو ته
نه ښراوو مو پر جوش راوستئ قهر
نه دعاوو مو لار پرانسته رحمو ته
له غيرته مې په زړه چړې چخيږي
چې له خپلو په ورتې ورتې ژاړم پردو ته
كه په ملك كې كراري واى ، آرامي واى
موږ به تلو په شوق په وياړ خپلو كورو ته
موږ به څه غوښته په دې تاوده ږهلي كې
چې يې نغم دى وتلى دوزخو ته
موږ به ولي پرديسۍ په زار گاللې ؟
موږ به ولي توسيدو د خواست گولو ته ؟

موږ به ولي منتونه وړل د خلکو ؟
موږ به ولي ناست وو ، ستاسي دروازو ته ؟
موږ به ولي په شپو شپو لوږې ګاللې ؟
موږ به ولي اړېدو وَ درویزو ته ؟
آخ ارمان چې هلته ژوبلي دي او وژلي
واخ ، ایله وږي لیوان دي وَ رمو ته
څه خبر و ، چې قفس بې ترې سازېږي
مرغه خوار چې په مابَت کتل سباخلو ته
غم دی دا چې چغالان دي پکښې نښتي
کوم دامونه چې موږ ایښي وو زمرو ته
په تلاښ د خضر تلو ، پر خرس مو شپه سوه
د حیوان د اوبو څوب بوتلو تیارو ته
د کوفې په نیت رهي وو ، کربلا ته
د حسین پرځای سوو ایل د شَمَر ملو ته
موږ ول دا به د فاران د رونا څرک وي
نصیب بوتلو د نمرود د اور لمبو ته
موږ ول دا به د موسی د لاس امسا وي
لاس مو ور وړ ، داپې مارانو خولو ته




اکادمیسین رشاد

# لولپه پیغله



۱۳۷٤

# لولپه پیغله

( چي د ۱۳۷۳ هـ ش کال په دوبي کې يې د
ملګرو ملتو د دفتر مخي ته په نوي ډهلي کي د
احتجاج په توګه ځان ته اور واچاوه . )

اکاډمیسین پوهاند رشاد

۱۳۷٤

# اهدا :

## د لولپه پیغلي ویرجني مور ته .

## د کتاب پیژندنه


| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | لولپه پیغله |
| لیکوال | : | اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد |
| خپروونکی | : | د آزاد افغانستان د لیکوالو ټولنه |
| د وفا جریدې د خپرونو | | |
| پرله پسې نومره | : | |
| تیراژ | : | ٥٠٠ |
| د چاپ کال | : | ١٣٧٤ مطابق ١٩٩٥ ع |
| د چاپ ځای | : | ټاپ پرنټرز - پیښور |
| مهتمم | : | لعل پاچا ازمون |
| کمپوزر | : | سید حسین پاچا |

رسمونه د : پوهنمل محمد اکبر سلام